# دکتاب پېژندنه :

لیکنه : عبدالله ناصح علوان

ژباړه اولنډېز : سلطان محمود « صلاح »

کمپوزر : خواجه محمد اسحق

خپرونکي : سناکتاب خپرولو اداره

شمېره : ۱۰۰۰ توکه

دچاپ نیټه : د ۱۳۸۰ کب میاشت

# د اولاد روزنه

مخکې لدینه چې د اولاد روزنې په اړه د اسلام رایه تشریح کړم غوره ګڼم له لاندنیو دریو اړخونو دواده په مسئله څه ناڅه رڼا واچوم.

۱ - واده د انسانی فطرت غوښتنه.

۲ - دواده ټولنیزه ښیګڼه.

۳ - واده یعنی انتخاب او غوره کول.

اوس راځی دری واړه ټکی په لاندی کرښو کی سره ولولو:

## لومړی : واده دانساني فطرت غوښتنه

اسلام دفطرت دین دی، او همداوجه ده چی رهبانیت نه منی ځکه رهبانیت دعبادت ترنامه لاندی له انساني فطری غوښتنونه سترگی پټوی ، او له انسان نه داسی څه غواړی چی له طبیعی غریزو سره اړخ نه لگوی.

که مونږ دوگړو دروژنی اوتولنیزو بیماریو دعلاج په اړه درسول (صلی الله علیه وسلم) لارښوونوته نظروکړو نودا به راته جوته شی چی اسلام تل او په هرځای او مناسبت کی انسانی فطری اړتیاوی غریزی، توان اوصلاحیتونه ئی په نظر کی نیولی دی، او کله ئی هم انسان پداسی څه ندی مامورکړی چی یائی دکولو توان ونلری اویائی له فطرت سره برابر نه وی.

اوڅرنگه چی واده هم یوه فطری غوښتنه ده نورسول (صلی الله علیه وسلم) پدی هکله فرمائی : « هغه څوک زما

له امت څخه ندی چی وس ئی رسیږی خو واده نه کوی».

پدی امر سره نه یوازی دفطرت غوښتنی ته مثبت ځواب ورکړ شویدی، بلکه مسلمان دټولنی دنورو غړو په اړه خپل مسئولیت ته هم په کلکه متوجه شویدی.

## دوهم : د واده ټولنیزه ښیګنه

په اسلامی طریقی سره واده کول دډیرو ټولنیزو ګټو اوښیګنو درلودونکی دی چی ځنی ئی دادی :

الف- په واده کولو سره انسانی نسل زیاتیږی، تسلسل اوبقائی دوام مومی .

ب- انسان په فطری توګه داخوښوی چی مور او پلار، اصل اونسب ئی معلوم وی، او هر انسان پخپل اصل او نسب یوډول ویاړهم کوی. نو په اسلامی طریقی سره واده دنسب ساتلو ترټولو غوره اوسیی لاره ده .

ج- واده له هرډول اخلاقی بدمرغیو، دزنا او ناروا یوځای

کیدو په واسطه له خوریدونکو بیماریو نه انسان او انسانی ټولنه په امن ساتی .

د- واده د میړه او ښځی ترمینځ داولاد روزنی په اړه دګډی مرستی روحیه راژوندی کوی، او دهغوی په زړونو کښی داسی عاطفه او احساس را پاروی چی هریو زیار باسی داولاد په سیی اوساله روزنه کښی له بل نه مخکی شی.

## دریم : واده یعنی انتخاب او غوره کول

اسلام هرهغه چاته چی غواړی دچا دژوند ملګری شی داسی لاری او قاعدی ښوولی دی که عمل پری وشی نونه یوازی داچی دهغوی ژوند به خوشاله ، سوکاله او بریالی وی، بلکه راتلونکی نسل به یی هم په خدای مین او له هرډول جسمانی اونفسانی بیماریونه په امن او امان وی .

# دواده په هکله د اسلام څنې مهمې لارښوونې دادي

## ۱- انتخاب باید لومړی ددین او دینداری په بناء وی

مطلب دا چې دژوند ملګری دانتخاب او تاکلو په وخت کې لومړی باید دی ته وکتل شي چې هغه ترکومې اندازې داسلام حقیقت پیژندلی، او ترکوم حده ئې اسلامی لارښوونوته دعمل جامې وراغوستې دی.

خو دا هم باید وواېو چې انسان پیژندل څه ساده کار ندی، بلکه ډیر وقت او حکمت په کاردی ترڅو دچا ظاهری شکل، ښکلا او څلاتاونه غولوی، نو لازمه ده دشخصیت پیژندنې ټول اساسی معیارونه په پوره توګه رعایت او په پام کې ونیول شي، نو مونږ ی معیارونه عمر (رضی الله عنه) داسې بیانوی :

يوكس راغى اوغوښتل ئى د عمر (رض) په وړاندى د بل چا په هكله شاهدى ووائى، عمر (رض) ورنه و پوښتل ته داسړى پيژنى؟ هغه ځواب ورکړ : هو ده ورته وفرمائل : آيا ته دده ګاونډى ئى چى په هرڅه ئى خبر وى؟ هغه وويل : نه. ده ورته وفرمايل : آيا تا سفر ورسره کړيدى چى په اخلاقو او عاداتوئى خبر شوى وى؟ هغه وويل: نه. ده ورته وفرمائل آيا څه مالى معامله د ورسره کړيده چى تقوى او پرهيزګارى ئى درته ثابته شوى وى؟ ده ورته وويل : نه. عمر (رض) په ځواب کى ورته فرمائى : ځه ته هغه نه پيژنى ، او هغه بل کس ته وائى: لاړشه اوداسى څوک شاهد راوله چى تا وپيژنى .

مطلب ئى داچى انسان پيژندنه ديونظر او ددوى خبروکارندى . نو څوک چى د اوږد ژوند ملګرى غوره کوى بايد په تش ليدو اودوو خوږو خبرو تير نه وزى، ځکه سبا به

بیا دنجات لاره ورنه ورکه وی. دین او اخلاق په ژوند کی ترهرڅه زیات اهمیت او ارزښت لری، نو پوره او عاقل سړی باید دژوند ملگری دټاکلو او غوره کولو په وخت کی باید دینداری او اخلاق له هرڅه مقدم او مخکی وشمیری ترڅو په راتلونکو کی دخوشحاله او سوکاله ژوند خاوند شی. بخاری او مسلم له ابوهریره (رضی الله عنه) نه په روایت سره وائی چی رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فرمایی: ښځی دڅلورو شیانو (مال، مقام، ښایست، اودین) په بناء په نکاح اخیستل کیږی. (نو ای مسلمانه!) ته دینداره ښځه له نورونه غوره او مقدمه وگڼه، منگلی دږ کی اوگټه د په برخه.

طبرانی له انس (رض) نه رانقلوی چی رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فرمایلی:

« که چا دیوی ښځی سره یوازی دهغی دجاه اوجلال پخاطر واده وکړ، الله تعالی به ئی ذلیل کړی. او که چادهغی دمال

او پیسو په‌خاطر واده ورسره وکړ الله تعالی به‌ئی په‌فقر اختـه کړی، اوکه‌چا دهغی دمقام اومرتبی په خاطر واده ورسره وکړ، الله به‌ئی سپک او بی حیثیته کړی، او که‌چا له کومی ښځی سره په‌دې خاطر واده وکړ چی سترگی او عورت ئی له‌حرامونه‌وړباندی وساتل شی او خپلوی ئی ورسره ټینگه شی، الله تعالی به په پردوی دواړو باندی خپل برکتونه رانازل کړی.

اسلام نه‌یوازی تارینه ته دا امر کوی چی دژوند ملگری تاکلو په‌وخت کی ددین او اخلاقو معیار ترهرڅه وړاندی اومحترم وشمیری دښځو پلرونه اوولیانوته‌ئی هم لارښونه کړیده چی دخپلو لوڼو او خویندو لپاره داسی ملگری انتخاب کړی چی ددینداری او اخلاقو په تله پوره وختلی شی. ترمذی له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) نه‌روایت کوی چی: «که دینداره او غوره اخلاقو خاوند دخپلوی هیله درنه‌وکړه نو

خپلوی ورسره وکړی، او که دا خپلوی موونکړه نودا به دځمکی پرمخ لوی فساد او فتنه وی».

زمانی هم دا ثابته کړیده هغه واده چی د دین او اخلاقو په بناء ترسره کیږی، میړه اوښځی ته ډیر نیکمرغه، هوسا اوخوشاله ژوند ورپه برخه کوی، او دهغوی دراتلونکی نسل دجسمانی اوروحانی سلامتیا ضمانت هم کوی.

## ۲ - انتخاب باید داصل اونسب په بناء وی

اسلام امر کړیدی چی دژوند ملگری دتپاکلو او انتخاب په وخت کی باید اصل، نسب اوشرف له یاده ونه ایستل شی، ځکه انسانان دنسب اوشرف له پلوه یو له بل سره توپیر لری، ځنی درانه او ځنی نور سپک اوبی قدره وی. همدا وجه ده چی رسول (صلی الله علیه وسلم) واده کونکی ته امر کړیدی چی دخپل ژوند لپاره داسی ملگری وټاکی چی له درنی کورنی

اودغوره اصل او نسب خاوند وی. عائشه وائی چی رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائلی : « دخپلو نطفو لپاره مناسب او په زړه پوری ځای غوره کړی، او له خپلو سیالانو سره واده وکړی ».

همدا راز ابن ماجه روایت کوی چی رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائی : « د خپلو نطفو لپاره غوره او مناسب انتخاب وکړی ځکه نژاد له یوه نه بل ته نقلیدونکی دی ».

ابن عدی او ابن عساکر له عائشه (رض) نه روایت کوی :

چی رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائلی : « دخپلو نطفو لپاره ښه ځای غوره کړی ځکه ښځی خپلو وروڼو او خویندوته ورته اولادونه راوړی ».

دا او دی ته ورته نور احادیث پدی دلالت کوی چی مسلمان باید له داسی ښځی سره واده وکړی چی په دینداره، درنه اوختبه پخه کورنی کی لویه شوی وی، ترڅو اولادئی

دژوند له لومړیو شیبو نه له دین، عزت، اوشرف سره آشنا او له
هرډول سپکاوی اورذالت نه په امن وی .

عمر (رض) ددی پوښتنی په ځواب کی چی اولاد په پلار
څه حق لري ؟ فرمائی : په پلار داولاد حق دادی چی دهغوی
دمور په انتخاب اوغوره کولو کی له ډیر دقت او احتیاط نه
کار واخلی، بیا ښه نوم ورباندی کیږدی او قرآنکریم ورزده
کړی .

ساینس هم اوس داثابته کړیده چی دمور او پلار ډیر
اخلاقی، جسمانی او عقلی صفات دهغوی اولادونوته
انتقالیږی، نو اوس ته ووایه هغه ماشوم به څنګه دنیکی
اوفضیلت نمونه نه ګرزی کوم چی په ختمه دروند او په سیی
توګه روزل شوی وی .

### ۳ - دخپلوانو په ځای له پردو سره واده غوره ګڼلی شی

اسلام دخپلو خپلوانو ترمینځ دواده په نسبت له پردیو او

لیرو کسانو سره واده کول غوره گڼي، ددې حکمت او فلسفه داده ترڅو له یوې خوا راتلونکې نسل له هغه بیماریو نه وژغورل شي چې په ارثي توگه انتقالیږي، او له بلې خوا دمختلفو کورنیو ترمینځ دخپلوۍ اړیکې ټینگې شي .

رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائي : « له خپلوانو سره واده مه کوئ. ځکه بیا به مو اولادونه له جسماني او عقلي پلوه کمزوري وي » او بل ځای فرمائي : « له پردیو سره واده وکړئ او په خپلو کې په واده کولو سره خپل اولادونه مه کمزوري کوئ ».

پدې حدیث کې رسول (صلی الله علیه وسلم) له خپلوانو سره دواده کولو هغه زیان په گوته کړیدی چې نني علم اوس ورباندې پوه شویدی، ساینس وائي له خپلوانو سره دواده کولو په نتیجه کې رامینځته شوي اولاد له جسماني اودماغي پلوه کمزوري وي .

## ٤ - له پيغلو سره واده کول غوره دي

اسلامي دين دکونډو په ځای له پيغلو سره واده کول غوره گڼي ددې امر تر شا ډيری گټې اوښيگڼې ولاړې دي، رسول (صلی الله علیه وسلم) دی خواته په اشاره کولو سره فرمائي :

« تاسي پيغلې په نکاح واخلئ ځکه هغوی له نورو نه زياتی خوږې ژبې لري، ډير اولادونه زيږولی شي په چل اوول کې له نورونه کمې وي، او له نورونه په کم شي قانع او خوښيږي »

خو داهم بايد له يادونه باسو چې په ځينې حالاتو کې بيا له کونډو سره واده له پيغلو سره دواده په نسبت گټوراو غوره وي .

## ٥ - بهتره ده له داسې ښځې سره واده وشي چې شنډه نه وي

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فرمائي :

« له داسي ښځو سره ودونه وکړئ چې اولاد زيږوي او مينه ناکې وي، ځکــه زه به د نورو امتونو په منيځ کې ستاسې په ډيرښت وياړم ».

**هغــه بنــځي چــې اولاد زيږوي لــه شنډې نــه پــه دروشيانو پيژندلې شــي:**

لومړۍ داچې دحمل ( باراخيستنې ) مانع ناروغي ونلري، دويم داچې دهغې خپلوانو ښځو ته وکتل شي چې شنډې خوندي ځکه ښځې پدې کې هم يوې بلې ته ورته وي، خو هغه څــوک چې خپل اولادونه زياتوي بايد دې ټکي ته کلکه پاملرنه وکړي چې دهغوي دنفقي ( خوراک ، څښاک) روزنې او ښوونې سيې اومناسب بنداوبست کولې شي او که څنګه ؟ او دهغوي په اړه دخپل مسئوليت اداکولو پوره توان لري او که نه؟ ځکه د اولاد ساتنه او روزنه دهرپلار اسلامي وجيبه او وظيفه ده، که څوک ئې ادانکړي خداى پاک به حتماً ورنه پوښتنه کوي اودغفلت جزا به ورکوي.

داوي دواده په اړه داسلام ځنې هغه مهمې لارښووني چې

داراته په گوته کوي چې اسلام له انساني فطرت سره برابر

دين دى، او غواړي داسې يوه انساني ټولنه جوړه کړي چې له

هرډول بيماريو نه پاکه او خوندي وي، او دهمداسې يوې

ټولنې دجوړيدو په هيله له هغه ځاى نه دانسان روزنه

پيل کوي چيرته چې د کورنۍ جوړيدو لومړنۍ ډبره

ايښودل کيږي .

# دوهم فصل

## له‌اولاد سره مینه او محبت

الله تعالی له‌اولاد سره مینه په‌فطری توگه د هر انسان په زړه کی ایښی ده، پدی فصل کی به‌داوگورو چی اسلام هر هغه‌څوک داجر او رحمت مستحق گڼی کوم‌چی له‌خپل اولاد سره مینه‌اومهربانی لری ،او هر هغه‌څوک رټی او غندی کوم چی دخپل اولاد خصوصاً لوڼو په‌اړه له‌جاهلی دود اودستور، قول‌او عمل نه کار اخلی او داډول ټول عادات‌او نظریات جاهلی اومردود شمیری .

سرېیره پردی دلته په‌داهم ولولو چی له‌اولاد سره دمینی اوبل کوم اسلامی حکم دتېکر او تعارض په‌وخت کی مور او پلار ته‌څه کول په‌کار دی .

## الف : لـه اولاد سـره مـينـه پـه فطري توگـه پـه زړه کي اخښل شويده

دايوڅرگند حقيقت دی چی لـه اولاد سره مـينـه دانسـانی فطرت برخـه ده ، د مـور اوپلار زړونه لـه رحمت او مـهربانی نه ډک پيدا شويدی او کـه ددوی پـه زړونو کی دا بی کچـه مينه او مـهربانی نـه وای ؛ نو دانسـانی نسل بقا اوتسلسل بـه ممکن نه وځکه بيـا بـه داولاد سـاتنې او پالنې پـه لار کې نـه چا ببخوبي تېروله او نـه بـه دهغـوی دښـېگنې او روزنـې پخـاطر دا راز راز کړاوونه گـالل . قـرآن کريم دمور اوپلار داطبيعی احسـاسات ډير ښـه انځور کړيدی، وينو چی يوځای اولاد ددنيـوی ژوند ښکلا بـولی ، بل ځـای داسی لوی نـعـمت ورتـه وائی چی بايد شکر ئی پـه ځـای شی، او کلـه ئی هم دسترگو تور اودزړه ټکور گـنـي . د الـکهف ٤٦ ، الاسراء ٦ ، او دالفـرقـان ٧٤ آيتـونو او داسی نور مبارک آيتونه .

## ب : له اولاد سره مينه لرل الهی نعمت دی

له اولاد سره مينه او مهرباني په حقيقت کی هغه لوی الهی نعمت دی چی الله تعالی دمور اوپلار په زړونو کی دهغوی دسالمی روزنی اوپالنی پخاطر ايښی دی، ځکه وينو چی دظالم اوبی مورده غصه ناک سړی اولاد غالباً بی لاری، جاهل اوبدبخت وی اوهمدا وجه ده چی اسلام هرپلار او مور بلکه ټولو ښوونکو او پالونکو ته دا امر کړيدی چی خپل زړونه د رحمت سمندر وگرزوی او ځانونه دشفقت او مهربانی په گانه سينگار کړی ابوداود او ترمذی روايت کوی چی رسول (صلی الله عليه وسلم) فرمائلی : « هغه څوک زمونږ له ډلی څخه ندی چی په وړو ( ماشومانو) رحم نکوی او د لويانو حق نه په ځای کوی ».

بخاری له ابوهريره (رض) نه روايت کوی وائی : يوه ورځ رسول اکرم (صلی الله عليه وسلم) خپل لمسی حسن (رض)

مچی ( ښکل ) کړ، اقرع بن حابس التميمی چی دغه وخت له رسول الله (صلی الله عليه وسلم) سره ناست ؤ وويل : زه لس اولادونه لرم خو يو يی هم ندی ښکل کړی . رسول (صلی الله عليه وسلم) ورته وکتل او وئی فرمائل :« په هغه چا رحم نه کيږی څوک چی په بل رحم نه کوی ».

په بل حديث کی راځی : اسامه بن زيد وائی : د رسول (صلی الله عليه وسلم) د يوی لور (رض) دزوی ځنکدن و. رسول (صلی الله عليه وسلم) ته ئی احوال واستاوه چی تشريف راوړی. هغه مبارک (ص) په ځواب کی سلام ورولیږه او ورته وئی ويل : د ټولو مالک خدای دی ، هغه څه چی ئی واخيستل او هغه چی ئی پريښودل، الله (ج) د هر څه لپاره نيته ټاکلی ده، صبر وکړه او له خدايه اجر وغواړه، لورئی بيا د تشريف راوړولو احوال ورته راوليږه نو رسول (صلی الله عليه وسلم) له سعد بن عباده، معاذ بن جبل، ابی بن کعب ،

زید بن ثابت او نورو اصحابو (رض) سره تشریف وروړو، لمسی ئی وروړاندی کړی شو، ده مبارک (صلی الله علیه وسلم) هغه پخپله غیږ کی ونیو، دماشوم حالت خراب ؤ نفس ئی ښکته پورته کیده، پدی وخت کی درسول الله (صلی الله علیه وسلم) له مبارکو سترگو اوښکی روانی شوی، سعد (رض) ورته وویل دا څه دی یارسول الله (صلی الله علیه وسلم) ده ورته وفرمائل: دا دهغه رحمت اوښکی دی چی الله تعالی دخپلو بندگانو په زړونو کی ایښی دی .

په بل روایت کی راځی چی رسول (صلی الله علیه وسلم) ورته وفرمائل : دا دهغه محبت او رحمت اوښکی دی چی الله تعالی پخپله اراده دځینو بندگانو په زړونو کی ایښی دی او الله تعالی په مهربانه بندگانو رحم کوی.

## ج : له لونو سره مینه نلرل دجاهلیت نښه ده

اسلام دعدالت اوبرابری دین دی، دزوی اولور ترمینځ هیڅ

ډول توپیر او تفریق نه منی بلکه له دواړو سره دیو شانته نیکی او مهربانی امر کوی، الله تعالی دمائده سورت په اتم نمبر آیت کی فرمائی : « عدالت وکړی، ځکه همدا تقوی ده ».

همداراز رسول (صلی الله علیه وسلم) په ډیر تاکید سره فرمائی :« داولادونو تر مینځ عدالت مراعات کړی، داولادونو ترمینځ عدالت مراعات کړی، داولادونو ترمینځ عدالت مراعات کړی ».

ریښتینو مسلمانانو دتاریخ په اوږدو کی دپورته الهی اونبوی لارښوونو په عمل کولو سره دخپلو زامنو اولوڼو تر مینځ هیڅ ډول توپیر اوتفریق ندی کړی له ټولو سره ئی یو ډول مینه ،نیکی اومهربانی کړیده ، خو کله په اسلامی ټولنه کی داسی ځوک وموندل شی چی دزوی اودلور ترمینځ توپیر کوی، زوی له لور نه غوره او بهترگنی نو دهغه ایمان کمزوری اوله اسلامی شریعت سره مخالفو جاهلی عاداتو او افکارونه

متأثر شوی شخصیت دی .

رسول (صلی الله علیه وسلم) ددی پخاطر چی له اسلامی تولنی نه دهرډول جاهلی دود او دستور جرړی له بیخه وباسی . د لونړو په هکله ئی ځانگړی لارښوونی کړیدی، او له هغوی سره ئی دمینی اومهربانی امر کړیدی، او له لونړو سره دمهربانی جزائی جنت تاکلی دی .

مسلم له انس بن مالک (رض) نه روایت کوی چی رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائلی : چاچی ددوو نجونو تربلوغ پوری پالنه وکړه، هغه به دقیامت په ورځ زما سره لکه ددی گوتو په شان وی او خپلی مبارکی گوتی ئی سره یوځای کړی .

بل ځای فرمائی : دچاچی دری لونړی یادری خویندی، اویادوی لونړی او یادوی خویندی وی او له هغوی سره نیکی اومهربانی وکړی، له صبر اوزغم نه کارواخلی ، ددوی په حق

کی له الله تعالی نه وویرېږی، نـو هغه شخص به جنت ته داخل شی.

ددی ارشاداتو په بنا ء دهر مسلمان وظیفه ده چی له خپل اولاد زوی او لور سره یو شانته مینه او مهربانی وکړی، او دهغوی ترمینځ هیڅ ډول توپیر او تمیز رواونه بولی ترڅو دجنت مستحق وګرزی.

## د : د اولاد په مړینه صبر کوونکی دلوړی درجی او لوی اجر خاوندان دی

هرڅومره چی دانسان ایمان پیاوړی وی په همغه اندازه دغم او کړاو په وخت کی صبر او په الهی فیصلی قانع او راضی وی. او دغمونو توپان ئی ملا نشی خمولی او څرګنده ده څوک چی دالله تعالی په فیصله صبر کوی دلوړی درجی خاوند او دزیات اجر مستحق ګرزی.

ترمذی او ابن حبان له ابو موسی اشعری نه روایت کوی:

رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائلی « کله چی دچا کوم اولاد مړ شي ، الله تعالی ملایکوته وائی : زما دبنده د اولاد روح موقبضه کړله؟ دوی ځواب ورکوی هو ( د هغه روح مو واخستله) الله تعالی ورته فرمائی : نو پدی وخت کی زما بنده څه وویل : ملائکی ځواب ورکوی : هغه ستا حمد او ثنا او انالله وانا الیه راجعون وویل . نو پدی وخت کی الله تعالی ورته فرمائی : تاسی زماددی بندی لپاره په جنت کښې یو کور جوړ کړی او دبیت الحمد ( شکرانی کور) نوم ورباندی کیږدی .

داحدیث ښیی چی داولاد په مړینه.صبر کول څومره لوی اجر اوبدل لری. بخاری او مسلم له ابوسعید الخدری (رض) نه روایت کوی وایی : یو ځل رسول (صلی الله علیه وسلم) ښځوته وویل که ستاسو دهریوی دری اولادونه مړه شی، هغوی به ورته (دقیامت په ورځ ) له دوزخ نه نجات ورکونکی

وی . یوی ښځی وویل کـه دوه وی ( نوڅنګه ) ؟ رسول (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل که دوه وی هم ( هغوی به هم ورته له دوزخ نه نجات ورکوونکی وی ).

پدی لوی غم دصـبـر کـولو بل عـوض او بدل دادی چی دچاچی وړوکی اولاد ( ماشوم) مړ شی نو هغـه دقـیـامت په ورځ د خپل مور او پلار شفاعت کوی. طبرانی له حبیبی نه روایت کوی وائی: زه له عائشی (رض) سره وم چی رسول الله (صلی الله علیه وسلم ) تشریف راوړ او وئی فرمائل : دچاچی دری ماشومان مړه شی، نو هغوی به دقیامت په ورځ را وستل اودجنت له دروازی سره په ودرول شی او جنت ته داخلیدو امر به ورته وشی دوی ( ماشومان) به وائی : مونږ تر هغه پوری جنت ته نه داخلیږو تر څو مو مور او پلار نه وی داخل شوی ، نو بیا به ورته وویل شی، ځی له مور او پلار سره مو یوځای جنت ته داخل شی .

مسلم له ابوحسان نه روایت کوی وائی: زما دوه زامن مړه شول، ابوهریره (رض) ته می وویل: پدی هکله د رسول (صلی الله علیه وسلم) کوم حدیث راته واوروه تر څو غم چی پری غلط شی، ده راته وویل له رسول الله نه می اوریدلی چی فرمائی: ددوی (مسلمانانو) واړه مړه شوی اولادونه دجنت واړه دی، هریو به ئی په مور او پلار پسی وی، لاس اویا جامی به ئی داسی رانیسی لکه څرنګه چی زه دا ستا جامی رانیسم او تر هغی به ئی نه پریږدی تر څو الله تعالی ټول جنت ته نه وی داخل کړی. بیشکه چی د اولاد مړینه لوی غم دی، او یوازی د ایمان قوت د اغم سپکولی شی. نو مومن ته په کار ده چی د زغم او صبر لمن ټینګه کړی تر څو د الله تعالی رضا او جنت وګټلی شی او د مسلمانانو دینی او انسانی وظیفه ده چی د غم پدی ګړی کی له خپل مسلمان ورور سره همدردی او غم شریکی وکړی او داسی تسلا ورکړی «إن لله

ما أخذوله ما أعطى، وكل شيء عنده بأجل مسمى، فلتصبرولتحتسب» يعنې دټولو مالک الله تعالى دی، څه چې ورکوی هم دده دی، اوڅه چې بیرته اخلی هغه هم په دی، هغه دهرڅه لپاره نیټه ټاکلی، صبر کوه او له خدایه اجر غواړه، ددی ترتیب سره په غم صبر کوونکی او تسلا ورکونکی ټول داجر او ثواب مستحق ګرزی.

## هـ : اسلامی مصلحت باید داولاد له مینی نه مقدم وګڼل شی

سبی ده چې داولاد مینه مور او پلار په زړونو کی په طبیعی او فطری توګه اخښل شویده، او دانسانیت تقاضا هم داسې ده چې باید له اولاد سره نیکی او مهربانی وشی، خو دامینه او محبت باید په هیڅ صورت هم له اسلامی دین نه مقدمه نه وی، او نه باید دتبلیغ او جهاد مانع وګرزی، ځکه مسلمان هغه دی چې اسلام له بل هرڅه نه محترم او مقدم

وشميري ، او ددين غلبه او برى ئى دژوند ترټولو لوى هدف او هيله وى، خو كه څوك كوم مادى اودنيوى هدف اومرام له اسلام نه مقدم او وړاندى وګڼى نو هغه بايد په خپل ايمان كى له سره غور او نظر وكړى ځكه الله تعالى فرمائى :

« كه چيرى تاسى ته خپل پلرونه، زامن، وروڼه، دژوند ملګرى، دكورنى نور غړى، ګټل شوى مالونه، هغه تجارت چى له خسارى نه ئى ويرېږى ، خوښ كړى شوى كورونه، له الله اودهغه له رسول (صلى الله عليه وسلم) اودالله په لاركى له جهاد نه ګران اومحترم وى، نودالله تعالى دامر او فيصلى انتظار وكـــړى. او الله تعالى فاسقانوتـــه هدايت نه كـــوى . ( التوبه – ٢٤ )

نو هر مسلمان ته په كار ده چى اسلام او جهاد له زامنو، خپلوانو او نورو ټولو شيانو نه مقدم او قيمتى وګڼى ترڅو دكامل ايمان خاوند او دالهى اجر مستحق وګرزى .

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فرمائی : دری داسی شیان دی که په چا کی وموندل شی نودایمان نور اوخوند خوروالی، به حتماً بیا مومی، لومړی دا چی الله او رسول ورته له هرڅه نه زیات گران وی، دویم داچی یوازی دخدای په خاطر له بل چا سره مینه اودوستی وکړی، دریم داچی کفر دومره بد وبولی لکه په اورکی لویدل چی بد گنی.

امام بخاری له رسول (صلی الله علیه وسلم) نه روایت کوی چی فرمائی : ستاسی ایمان ترهغی پوری بشپړ او کامل ندی ترڅو چی زه (صلی الله علیه وسلم) ورته له خپل مال، اولاد او ټولو خلکو نه گران اونژدی شوی نه وم.

## و: اولاد ته سزا ورکول

ترڅو پوری چی اولادونه واړه او دښوونی او روزنی په ابتدائی مرحله کی وی نومور او پلار مسئولیت لری چی دهغوی دسالمی روزنی، او اصلاح کولو په خاطر ټولی لازمی

لاری چاری په کارواچوی او پدی هکله تول اسلامی هدایات په سیی توگه پلی اوتطبیق کړی ترڅو دنیکو اخلاقو نمونه اودخلکو لپاره مقتدا شی.

د اولاد داصلاح کولو او بی لاری نه ژغورلو په هکله اسلامی لارښوونی څه داشانته دی: موراو پلار که له خپل اولاد نه څه خطا او انحراف وینی لومړی باید په خوږه او پسته ژبه نصیحت ورته وکړی، او که دا طریقه کامیابه نه شوه نو بیا به له څه سختی نه کاراخلی، خپلی اړیکی به ورسره سستوی او ځان به ورنه خفه اومرور نیسی ترڅو هغه اصلی لاری ته راوگرزی، خو که بیا هم اصلاح نه شو نو بیا دعملی سزا یعنی څه لږ شانته وهلو وار راځی او پدی طریقه سره به خپل اولاد ته له انحراف اوفتنی نه نجات ورکوی.

اوس راځی دماشومان داصلاح دادری واړه طریقی درسول (صلی الله علیه وسلم) په ژوند کی دعمل په ډگر کی وگورو:

**ومووېل چې دماشوم داصلاح لومړنۍ طريقه په نرمه اوخوږه ژبه نصيحت کول دي،**

بخاري او مسلم له عمر بن ابی مسلمه (رض) نه روايت کوی وائی : زه په وړوکوالی کی درسول (صلی الله عليه وسلم) ترنظارت او سرپرستی لاندی وم، د ډوډی خوړلو په وخت کی به مې دلوښی هری خواته لاس اچاوه، نو رسول (صلی الله عليه وسلم) داسی نصيحت راته وفرمايه : هلکه، لومړی بسم الله وايه، بيا په ښی لاس له خپل طرف ( پلو ) نه ډوډی خوره. همدا راز له سهل بن سعد نه روايت دی چی وائی : يوځل رسول الله (صلی الله عليه وسلم) ته دڅښاک لپاره څه راوړل شول، دده مبارک ښی خواته يو ماشوم ( عبدالله بن عباس «رض» ) او چپی خواته ئی نور مشران ناست ؤ ، پدی وخت کی رسول الله (صلی الله عليه وسلم) دشفقت له مخی لوموړی ماشوم ته وويل : ستا اجازه ده چی داڅښاک لومړی

مشرانوته ورکړم، هلک وویل : نه، زه نه غواړم ستا له خوا راکړل شوی څیز لوړی بل چاته ورکړم. نو رسول (صلی الله علیه وسلم) هم هغه لوړی همدی ماشوم ته ورکړ .

## داصلاح دویمه طریقه له ماشوم نه خفگان او مرورېدل دي

پدی هکله بخاری او مسلم له ابوسعید الخدری (رض) نه روایت کوی: رسول (صلی الله علیه وسلم) له چوخ ویشتلو « شگه په دوو گوتو ویشتل » نه منع کړیده اودنهی سبب ئی داسې بیان کړیدی : دا چوخ نه ښکار وژلی شی، نه دښمن زخمی کولی او یا وژلی شی، خو سترگه ړندولی او غاښ ماتولی شی، په بل روایت کی راځی چی د ابن مغفل (رض) یو خپلوان چی لا ماشوم ؤ چوخ ویشته، ده ورته وویل : داکار مه کوه ځکه رسول (صلی الله علیه وسلم) ورنه نهی کړیده ، خو هغه ماشوم بیا داکار تکرار کړ، نوده ورته وویل : زه درته

وایم چې داکار مه کوه ځکه رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ورنه نهی کړیده، خو ته ئی بیا هم تکراروی، نو زه به نور هیڅ خبری درسره ونکړم.

داصلاح ددریمې طریقې یعنی ماشوم ته دسزا ورکولو او وهلو په اړه ابوداود له عمربن شعیب نه روایت کوی چې رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائی: کله مو چې اولادونه اوه کلن شول دلمانځه امر ورته وکړی او چې لس کلن شول (او لمونځ ئی نه کاوه) نو وئی وهی، او په همدی وخت کې ئی ځایونه سره بیل کړی.

یوځل بیا یادونه کوم چې دا پورته یاده شوی طریقه دهغه ماشومانو داصلاح او لاری ته برابری طریقه ده چې لابالغ شوی نه وی، او هغه چې بالغ شوی اودعمر پخوالی په لور روان وی دهغوی داصلاح طریقه داسی ده:

کله چې مور او پلار ولیدل چې په نرمه ژبه نصیحت او

تبلیغ په بی لاری اولاد اثر او اغیزه نکوی بی لارئ نه پرېږدی ، نو ورته په کارده چی خپلی اړیکی ور سره وشلوی او ترهغی پوری ور سره په خوله نه شی ترڅو پوری اصلاح شوی نه وی .

پدی هکله ډیر احادیث رانقل شویدی له هغی جملی نه دکعب بن مالک (رض) حدیث هغه چی د تبوک له غزانه بی له عذره پاتی شوی ؤ ، بخاری دده له خولی روایت کوی : کله چی رسول (صلی الله علیه وسلم) د تبوک له غزا راوګرزید ، او له غزا پاتي شوی کسان ورغلل هرچا رښتیا دروغ عذر وړاندی کړ ، خو مونږ دری تنه داسی وو چی څه عذر مونه درلود ، نو رسول (صلی الله علیه وسلم) مسلمانانوته امروکړ چی له مونږ سره اړیکی وشلوی او خبری راسره بندی کړی او داحکم ترهغی پوری نافذو ، ترڅو الله زمونږ توبه قبوله کړه او قرآن کریم زمونږ عفوه اعلان کړه . په بل حدیث کی راغی یوازی دخدای په خاطر له چاسره دوستی اودښمنی ، مینه او

کینه دایمان ذیره پیاوړی اومضبوطه کړی ده .خوبایدله یاده ونه باسو چی دخبرونه کولو او ځان خفه نیولو سزا یوازی دهغه خپلوانو لپاره ده چی مسلمان وی خوبی لاری اوفاسق شوی وی، او هغه خپلوان چی له اسلام نه وزی کفر اوالحادته ننوزی نوله هغوی نه باید بشپړ برائت او بیزاری اعلان شی او هردول اړیکی ورسره وشلیږی ، قرآنکریم پدی هکله فرمائی:
داسی مومنان به نه مومی ( یعنی هغه مسلمان ندی) چی دالله او رسول (صلی الله علیه وسلم) له دښمنانو سره دوستی کوی که څه هم هغوی ئی پلرونه، زامن ،وروڼه او یا نور خپلوان وي. (المجادله:۲۲) مطلب داچي مسلمان باېد ددین رابطه له بلې هری رابطی هغه که دنسب رابطه وی باځمکی یاژبی اویارنگ رابطه وی مقدمه اومحترمه وشمیری ، ددوستی او دښمنی معیارئی په خدای ایمان اوله رسول (صلی الله علیه وسلم) سره مینه اومحبت وی .

# دریم فصل

## دنوي پیدا شوي ماشوم په هکله اسلامي احکام.

## دافصل څلور برخې لري

۱- دماشوم دپیدا ینبت په وخت کې څه کول په کار دي.

۲- په ماشوم نوم اینبودل

۳- عقیقه یعنې په ماشوم څاروي حلالول.

٤- دماشوم سنتول.

**لومړۍ برخه: دماشوم دپیدا ینبت په وخت کښې څه کول په کاردي:** اسلامي دین ټول هغه احکام چې په ماشوم پورې اړه لري په څرگنده او بشپړه توگه بیان کړیدي، نو دهرپالونکي وجیبه ده چې دا احکام په عمل کې پلي کړي. هغه احکام چې دپیدا ینبت په وخت کې باید عمل ورباندې وشي دادي:

## ۱- دماشوم موراو پلار او نورو خپلوانو ته زيری اومباركي وركول

كله چې دچا په كوركې ماشوم ( هلك وي كه نجلی ) پيداكيږي نومسلمانانو ته په كار دي چې دهغه خپلوانو ته زيری اومباركي وركړي ځكه پدې سره دمسلمانانو ترمنځ اړيكې مضبوطيږي ، مينه اومحبت ئې سره زياتيږي اوكه چاونه شوی كړی خپل مسلمان وروروته ددې خوشالي زيری او مباركي وركړي نوتهولوته دې دخير او بركت دعا وكړي .

قرآنكريم اسلامي امت ته دلارښوونې په منظور په مختلفو ځايونو او مناسبتونو كې دنوی ماشوم دپيدا كيدو زيری او مباركي ياده كړيده :

الله تعالی دهود سورت په ٦٩- ٧١ آيتونوكې دابراهيم (ع) دكيسې په ضمن كې فرمائي: « اودابراهيم (ع) ميرمن ( بی بی ساره) چې دپردې شاته ولاړه وه ددوی خبری ئې اوريدی

اودلوط (ع) دقوم دهلاکیدو په خبرخوشاله شوه وئی خندل نو
مونږ ورته داسحاق (ع) د (پیدا کیدو) زیری ورکړو او په هغه
پسی دیعقوب (ع) دپیداکیدو زیری»

همداراز دمریم سورت په (۷) آیت کی دزکریا (ع) کیسه
داسی یادوی: ای زکریا، مونږ تاته دیوه هلک (پیداکیدو)
زیری درکوو چی نوم ئی یحیی دی. او مونږ مخکی لدینه پدی
نامه څوک ندی پیدا کړی».

امام بخاری اودسیرت کتابونه رانقلوی کله چی رسول
(ص) پیدا شو دابولهب وینزی (ثویبی) خپل بادار (ابولهب
) ته زیری ورووړ او ورته وئی ویل نن شپه د عبدالله زوی
پیدا شو، ابولهب ډیر خوشاله شو او پدی زیری کی ئی ثویبه
آزاده کړه، الله تعالی دده داعمل ندی ضائع کړی او له مرگ
نه وروسته به دده دغتی او شهادت گوتی ترمینځ لاندینی
ژوروالی کی او به وروڅښبی (یعنی ابولهب ته له مرگ

وروستـه ددی خـوشـحـالی په‌بدل کی دده په خـپـره کی اوبه ورڅښبل کېږی ).

لنډه دا چی دماشـوم په پیـدا کیـدو (هلک دی کـه نجلی) زیری اومبارکی یو اسلامی عـمل دی. مـسلمـان باید دهلک او نجلی ترمینځ توپیرونکړی او په دواړو یوډول خوشالی وکړی، اویوبل تـه‌ئی زیری اومـبارکـی ووائی، او دا چی نن‌سبـا ځنی خلک پدی مناسبت دګلونو ګیډی اویانوری تحفی سره تبادله کـوی دا یونـیـک کـارګڼلی شی ځکـه تحـفـه‌ورکـول هسی هم سنت دی او دمسلمانانو اړیکی نوری هم‌سره ټینګوی.

## ۲- دماشوم په‌غوږکی آذان

اسلام امرکړی دی چی دماشوم له پیدا کیدو سره سم دهغه په ښی غوږ کی ئي آذان او چپ غوږ کی اقامت وویل شی، له ابن عـبـاس (رض) نه روایت دی چی وائی: کله‌چی حسن بن علی (رض) پیـدا شو، رسـول (ص) ئی په‌همغـه ورځ په‌ښی

غوږ کی آذان او چپ غوږ کی اقامت ووایه. ابن قیم دماشوم په غوږونو کی دآذان او اقامت حکمت بیانوی وائی : دا امر ددی پخاطر دی ترڅو ماشوم دنیاته له راتگ سره سم داملکوتی عظیم آواز واوری او دا به ورته داسلام تلقین وی لکه څرنگه چی له دنیا نه دتلو (مرگ) په وخت کی دکلمی تلقین کیږی .

دآذان بله گټه داده چی دالله اکبر ناری ته شیطان نه شی ټینگیدی او کله هم چی دا آواز واوری سمدستی پښې سپکوی او تښتی .

## ۳ – دماشوم په تالو دژوول شوی خرما موښل

کله چی ماشوم پیدا شی نوسنت طریقه داده چی خرما یا بل کوم خوږ شیز ښه وژوول شی اودگوتی په سر دماشوم په تالو ښی او چپی خواته ښه وموښل شی کیدای شی دادماشوم دخولی دعضلاتو لپاره یوډول تمرین وی ترڅو وروسته په

اسانی سره دمور شیدی ورودلی شی .

پدی هکله بخاری اومسلم له‌ابو موسی (رض) نه‌روایت کړیدی وایی : کله‌چی زما زوی پیدا شو نو هغه می درسول (ص) خدمت ته حاضر کړو ، رسول (ص) ابراهیم نوم وربانْدی کیښود او یوه خرمائی وژووله‌او د ماشوم په‌تالو یی وروموښله او دوعائی ورته‌وکړه ، بیائی بیرته ماته‌راکړ .

نوداثابته شوه‌چی داعمل سنت دی، خو غوره داده‌چی دیوه متقی اودینداره سړی په‌لاس ترسره‌شی .

## ٤- دماشوم دسر خرییل

مستحب دادی‌چی په‌اوومه‌ورځ دماشوم سروخرییل شی اودویښتانو دوزن په‌اندازه سپین زر (یائی‌بیه) مسکینانو ته ورکړل‌شی. دا اسلامی حکم دفقر په‌خلاف یوګام او په‌ټولنه کی دتعاون او همدردی دروحیی راژوندی کونکی عمل دی .

له‌انس بن مالک (رض) نه‌روایت دی چی رسول (ص)

دحسن او حسین (رض) د پیداښت په اوومه ورځ دهغوی دسرونو دخریلو امروکړاو دویښتانو دوزن په اندازه ئی سپین زر صدقه کړل.

خودسرخروولو وخت کی باید دی ته کی ته پام وشی چی سربایدټول وخریل شی. ځکه رسول (صلی الله علیه وسلم) له قزع (دسرځینی برخی خریل اوځینی پریښودل) نه سخته نهی کړیده، داحدیث بخاری اومسلم روایت کړی دی.

**دویمه برخه په ماشوم نوم ایښودل:**

لکه څرنګه چی دهرقوم اوولس دارواج دی چی دماشوم له پیدا کیدو سره دهغه مور او پلار دده دپیژندګلوی پخاطر نوم وربانددی ږدی، اسلام هم دی خواته توجه کړی او په ماشوم نوم ایښودلو په اړه ئی لاندینی احکام په ګوته کړیدی.

**۱- دنوم ایښودلو وخت**

که پدی هکله درسول (ص) مبارک احادیث ترنظر

تیرکړو نو دابه راته څرګنده شي چې اسلام په ماشوم باندی دنوم ایښودلو لپاره خاصه ورځ او نیټه نده ټاکلی . بلکه مور او پلار کولای شي دماشوم په لومړی، دریمه ، اوومه یاهم مخکی یا وروسته نوم وریاندی کیږدی .

مسلم له انس (رض) نه روایت کوی چې رسول (ص) فرمایلی : تیره شپه زما زوی پیدا شو او نوم می وریاندی ابراهیم کیښود په بل حدیث کی سمره (رض) له رسول (صلی الله علیه وسلم) نه روایت کوی چې فرمائی: هرماشوم ترخپلی عقیقی پوری بند اوتړلی دی ، هغه چې په اوومه ورځ وریاندی حلالیږی او په همدی ورځ نوم وریاندی ایښودل اوسرئی خرییل کیږی .

## ۲ - کوم نومونه مستحب او کوم مکروه دی

مور او پلار وظیفه لری پخپل اولاد غوره اوګلالی نوم کیږدی . رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائی : دقیامت په

ورځ به تاسي پخپل او د پلار په نامه رابلل کیږي نو ښه او مناسب نومونه غوره کړی . مسلمان باید زیار وباسي ترڅو خپل اولاد ته داسي نوم انتخاب کړي چي دهغه له انساني کرامت او عظمت سره مناسب وي او په راتلونکي کي په هغه باندي دملنډو او مسخرو سبب نه شي، ترمذي له عائشي (رض) نه رانقلوي چي وايي : رسول (صلی الله علیه وسلم) به دخلکو خراب او نامناسب نومونه بدلول، لکه چي د « عاصیي » نوم ئی په « جمیله » او د « حرب » نوم ئی په « سلم » بدل کړیدی . همدا راز داسي نوم باید غوره نه کړی شي چي په معنی او یا اشتقاق کي ئی دخلکو په نزد بد شګوني (بدفالي) وي، ترڅو ماشوم ددی ډول بدفالي له غم او ضرر نه په امان وي، ددی ډول نومونو مثال لکه سکروټه، سیلاب، طوفان، تندر، شرر او نور ... داهم ندی روا چي په ماشوم باندي دالله تعالی له خاصو نومونو نه یو نوم کیښودل شي

لکه احد، صمد، خالق، اورازق په یوه حدیث کی راځی چی رسول (صلی الله علیه وسلم) دیوه سړی نوم له ابوالحکم نه أبوشریح ته واړاوه او ورته وئی فرمایل چی «حکم» یوازی دالله تعالی نوم دی نه دانسان. په همدی ترتیب داسی نوم هم ښه ندی چی په ځینو وختونو کی دکومی بلی کلمی او توری لکه دعربی ژبی (لا) په زیاتوالی سره خرابه او ناوړه معنی ورکړی، لکه چی دچانوم «أفلح» (کامیاب) وي نو که په عربي ژبه کي د (لا) توري ورسره زیات نشي نو د لا افلح (نامراده اوناکام) معنی ورکوی چی داښه او مناسبه خبره نده، په حدیث کی راځی چی رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمایلی پخپلو اولادونو افلح، نافع، رباح، یسار او په بل روایت کی دنجیح نومونه مه ږدی .

له هغه نومونو نه هم باید ډډه وکړی شی کوم چی له الله تعالی نه پرته بل چا یابل شیز ته دبندگی معنی افاده کوی لکه

عبدالکعبه او یا عبدالعزی او نور ...

مسلمان مور او پلار ددی تولو ترڅنګ باید خپل اسلامی تشخیص او حیثیت هم په نظر کی ولری او دخپل اولاد لپاره داسی نوم غوره نکړی چی دکفر، الحاد، فسق او فجور سره دمینی او محبت ښکارندوی وی لکه دکوم مشهور کافر، ظالم، ملحد، ډم، نوم، ددی مثال دهیفاء نهاد، سوسن، جورج ،ډیانا، درمندر، هماما لانی او داسی نورنومونه، کیدای شی زمونږ په ټولنه کی داسی خلک شته چی داډول نومونه خوښوی خو اسلام ددی اجازه نه ورکوی چی یو مسلمان د دومره بی شخصیته او سپک شی چی دچاله نخا او ګډانه دومره متاثر شی چی خپل اولاد دهغه په نوم ونوموی، او دا په حقیقت کی په فساد، ناروا او تیری باندی یوډول خوښی او حتی ویاړ کیدی شی، مسلمان باید یوازی او یوازی پخپل دین او مذهب وویاړی نه دا چی الحاد او فساد ورته له خپل

اسلامي تشخص اوپېژندګلوی غوره او ارزښتناک وی،
رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) فرمائي :« پخپلو اولادونو
د انبیاوو (ع) نومونه کېږدی، دخدای په نزد ترټولو غوره
نومونه دعبدالله او عبدالرحمن ، او ترټولو ریښتونی دحارث
او همام، او ترټولو بد اوخراب دحرب اومرة نومونه دی .

# دنوم ایښودلو په اړه
# څـــونـــوري خـبرې

کـه چیـرته مـوراو پلار داولاد دنوم په هکلـه سره مـخـالف شول، نوبیـا داحق لومړی دپلار دی چې پخپل اولاد څـه نوم پږدي، قرآنکریم فرمائي: « تاسی ورته ددوی دپلرونو په نوم اواز وکړی، او دا دخدای په وړاندی عدل دی » ( احزاب - ٥ )

اسلام هیڅاته هغه که موروی یا پلار اویابل څوک ددی حق ندی ورکړی چې ماشوم په بدنوم او یالقب سره یاد کړی ځکه دا دماشوم په نفسیاتی او اجتماعی وده ډیره ناوړه اومنفی اغیزه کوی، نومشران او روزونکی باید متوجه اوسی چې کوم ماشوم ته داسی نوم ورنکړی چې په ټولنه کی دده له راتلونکی

شان او مقام سره برابر نه وی، او دخلکو په وړاندی دهغه شخصیت معیوبوی، لکه چی ورته ووائی ای لنډیه، ای سوټکیه، ای فلانیه او . . . پدی هکله الله تعالی داسی فرمائی « یوبل ته بد لقبونه مه اخلی » ( حجرات - ۱۱ )

## دریمه برخه - عقیقه

### ۱- عقیقه څه ته وائی ؟

عقیقه عربی کلمه ده چی لغوی معنی ئی قطع یعنی پری کول دی، او په شرعی اصطلاح کی دماشوم دپیدایښت په اوومه ورځ د پسه ( یا بل څاروی ) حلالولو ته عقیقه وائی .

### ۲ - دعقیقی دمشروعیت دلایل

زیات شمیر احادیث دعقیقی په مشروعیت دلالت کوی او حکم ئی سنت او یا مستحب بولی. بخاری شریف له سلمان بن عمار الضبی نه روایت کوی وائی : رسول (ص) فرمایلی : «

له هرماشوم سره عقیقه وی، تاسی دده په سر څه حلال کړی، او
له ضرر نه ئی وساتی». امام احمد او ترمذی دعایشی (رض)
له قوله وائی: رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمائی: «
دهلک په سر دوه داسی پسونه چی په شکل او عمرکی سر
برابروی، او دنجلی په سر یو پسه حلال کړی».

## ۳- دعقیقه دحکم په هکله دفقهاوو رایې

### پدی هکله فقها، دری مختلفی رایې لری:

### الف- عقیقه سنت یا مستحب ده

دا دامام مالک، امام شافعی، امام احمد او نورو رایه ده
دوی په پورته ذکر شوو احادیثو استدلال کوی.

**ب- عقیقه واجب ده** دا دحسن بصری، لیث بن سعد او ځینی
نورو رایه ده، دوی درسول (صلی الله علیه وسلم) دا قول
دلیل نیولی چی فرمایی: « هرماشوم ترخپلی عقیقی پوری
بند او تړلی دی» یعنی ترهغی پوری دمور او پلار دشفاعت

اجازه نلری ترڅو پوری یی عقیقه نه‌وی‌شوی ( کوم ځاروی نه وی‌وریاندی حلال‌شوی) ، نوموړی علماء وایی درسول (صلی الله علیه‌وسلم) داقول دوجوب افاده کوی نوځکه عقیقه‌واجب‌ده .

**ج- عقیقه مباح ده** دا داحنافو مذهب او رایه‌ده ، هغوی وایی عقیقه یو مباح عمل دی که‌چا وکړه نو روا ده او که‌یی ونکړه څه مسئولیت‌وریاندی نشته. او د خپلی رایی داثبات لپاره داسی دلیل راوړی او وایی چی : حضرت عایشی (رض) له رسول (صلی الله علیه‌وسلم) نه‌روایت کړیدی چی فرمائی : « دلوی اختر قربانی (څاروی حلالول) مخکینی ټولی وینی تویونی (څاروی حلالول) منسوخی کړیدی. ددی معنی داده‌چی کله‌چی دلوی اختر دقربانی حکم‌راغی نو پدی سره دمخکینو قربانیو لکه‌عقیقی او نورو حکم منسوخ شو اوس‌دهرمسلمان خوښه داولاد په‌سر څه حلالوی او که‌نه.

## ٤- دعقیقی وخت

پدی هکله رانقل شوی احادیث دا افاده کوی چی دعقیقی
مستحب وخت دماشوم اوومه ورځ ده. په یوه حدیث کی راځی
: رسول (صلی الله علیه وسلم) دحسن او حسین (رض
دواړو د پیدایښت په اوومه ورځ عقیقه کړی، په همدی ورځ
ئی نومونه ورباندی ایښی او په همدی ورځ ئی دهغوی
دسرونو خروولو امر کړیدی.

خو ځنی عالمان وائی چی اوومه ورځ شرط نده بلکه کیدای
شی په څلورمه، اتمه، لسمه او یا بله کومه ورځ عقیقه وکړی
شی. پدی هکله مشهور اقوال دادی : له عایشی (رض) نه
روایت دی چی وائی : دعقیقی وخت دماشوم اوومه ی
څوارلسمه اویا یویشتمه ورځ ده . امام مالک وائی عقیقه پ
اوومه ورځ مستحب ده، خو په څلورمه، اتمه، لسمه، او

وروسته کومه بله ورځ هم روا ده .

ددی ټولو مطلب داکیدای شی چی مسلمانان باید درسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) داسنت را ژوندی کړی، که ئی وس و دماشوم په اوومه ورځ اویا کومه بله ورځ پسه وریاندی حلال کړی، او ټول خپلوان، دوستان او ګاونډیان له ځان سره پدی خوشالی کی شریک کوی .

## ۵ - دهلک اونجلی دعقیقی ترمینځ توپیر

په اسلام کی دهلک اونجلی عقیقه یوشانته حکم لری، په حدیث کی راځی چی رسول (صلی الله علیه وسلم) امرکړی چی په هلک د دوه او نجلی یو پسه حلال کړی شی، دا اودی ته ورته نور احادیث داثابتوی چی دهلک اونجلی عقیقه دحکم له پلوه کوم توپیر نه سره لری، خو اختلاف یوازی پدی کی دی چی په هلک دوه او نجلی یو پسه بښوولی شوی دی

اسلامي پوهان پدې هکله هم دوه ډوله نظریې لري:

لومړنی مذهب اونظریه دابن عباس، عائشې اونورو ده هغوی وائي په هلک دوه او نجلۍ یو پسه حلالول په کار دي.

دویمه رایه دامام مالک ده چې هغه په دواړو یعنې هلک او نجلۍ یویو پسه بسیي اودلیل ئې په ابوداود کې روایت حدیث دی چې وائي: «رسول (صلی الله علیه وسلم) په حسن او حسین (رض) یو یو پسه حلال کړی ؤ».

ددې ټولو څرګندونو مطلب دادئ چې که چاوس اوتوان درلود نو په زوی ددوه او لور دیو پسه حلال کړي اوکه وس ئې نه ؤ نوبیا دې په زوی هم یو پسه حلال کړي، خدای مهربان دی چې قبول ئې کړي اواجرورته ورکړي.

## ٦- دعقیقې دپسه دهډوکوماتول مکروه دي

دماشوم دعقیقې په وخت کې باید دې ټکي ته توجه وشي چې دپسه هډوکي باید نه دټوټه کولو اونه هم دخوړلو وخت کې

ماشوم کړل شي بلکه زيار وايستل شي چي پسه داسي بند بند شي چي هډوکي ماتيدو ته ئي ضرورت پاته نه شي، ابوداود روايت کوي چي رسول (صلى الله عليه وسلم) دحسن او حسين (رض) دعقيقي په وخت کي وفرمايل : ددې پسه يو ورون قابلې ته ورواستوي ، نور په خپله او په نورو خلکو وخوري، خو هډوکي ئي مه ماتوي. کيداى شي ددې امر حکمت داوې ترڅو دګاونډيانواوفقيرانو په وړاندې ددې ورکړي قدر نور هم ډير شي ځکه هرڅا ته پوره اندام له يوې وړې ټوټې نه ډير ارزښت او قدر لري، او دزيات شي ورکړه دزياتي سخا ښکارګندوي دی، بله داچي دښاروي سلامت سلامت بند بند کول به دماشوم دسلامتيا او روغتيا په هيله يونيک فال هم وي ، ځکه عقيقه خو دماشوم دسر قرباني ده ، نو چي قرباني ئي پوره اوسالمه وي خداى مهربان دی چي ماشوم هم روغ او سلامت وساتي .

## ۷ - دعقیقی په اړه نور ضروري احکام

څو ک چې دعقیقې کولو نیت لري نو بايد لاندیني احکام په نظر کې ونیسي :

الف- پسه او وزه باید پوره دیوه کال وي، اويا داسې شپږ میاشتنی وري یاسیرلي وي چې له یوه کلن سره ئې تو پیرنه شي کیدی .

ب - دعقیقې لپاره غوره شوي باید جوړتیاروي، یعنی دړانده، ډیر ډنګر هغه ګوډ چې دحلالولو ځای ته دتلو توان نه لري ، هغه چې دغوږ، لکۍ، اويالم له دریمې نه زیات برخه يې غوڅه شوي وي ، اويايې له اصله غوږونه نه وي ( بوچې) ، هغه چې زیاتره غاښونه يې لويدلي وي او یادومره لیونی وي چې څریدای نه شي، ددا ټول معیوبو څارويو حلالول نه صحیح کیږي او که چا حلال هم کړنو دعقیقې حکم نه ورنه ساقطیږي .

ج – میښه ، او غویی باید دوه غاښی ( ددووکالو ) او اوښ باید پینځه کلن وی .

د – په عقیقه کی دڅوکسانو شراکت ندی روا ، بلکه یو حیوان به دیو ماشوم په سروی .

هـ – د پسه په ځای غویی یا اوښ حلالیدی شی خو په دی شرط چی یو بوده دیوماشوم په سروی، که څه هم ځینی عالمان یوازی پسه دعقیقی لپاره روا بولی، خودرسول (صلی الله علیه وسلم) حدیث چی فرمایی : « له هرماشوم سره عقیقه وی ، تاسی څه وربانده حلال کړی ».

داثابتوی چی دپسه اوبل هرڅاروی حلالول صحیح اوکافی دي.

و – دعقیقی دغوښی ویشلو حکم لکه دقربانی دغوښی په شان دی، یقینی داغوښه په خپله خوړل کیږی ، فقیرانوته صدقه، دوستانواوگاوندیانوته هدیه کیږی ، خو یوه برخه

دقابلی هم وی پکی . او که څوک دعقیقی غوښه پخه کړی بیا خلک ورته راوبولی نوداهم جواز لری.

ز- مستحبه طریقه داده چی عقیقه باید دماشوم په نامه حلال شی، یعنی دحلالولو په وخت کی وویل شی چی ای خدایه دادفلانی دسر صدقه ده ته یی قبوله کړی ، عایشه (رض) وایی رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمایی : « عقیقه (څاروی) دماشوم په نوم ذبحه کړی اوداسی ووایی بسم الله ، اللهم لک والیک هذه عقیقه فلان .. » او که نوم یادنه شی نویوازی نیت هم کافی دي .

## دعقیقی ځینی حکمتونه اوګټی

۱- دادژوند په پیل کی دالله حضورته دماشوم نذرانه ده

۲- له آفتونو اومصیبتونونه دساتنی په بدل کی فدیه اوقربانی ده.

۳- په عقیقی سره ماشوم ته دخپل مور او پلار دشفاعت

حق حاصلیږی .

٤ - دنوی مسلمان په پیدا کیدو خوشحالی اوشکرانه ده.

٥ - دمسلمانانو ترمینځ داړیکو دلاټینګښت په لورهڅه او هاند دی .

## څلورمه برخه سنتول

دماشوم سنتول یو شرعی امردی او پدی هکله ډیر احادیث راغلی دی، له هغی جملی نه له ابوهریره (رض) نه دبخاری اومسلم دارو ایت دی چی وای رسول (صلی الله علیه وسلم) فرمایلی : « پنځه شیان فطری (سنت) دی : ختنه ( سنتول ) ، دڅاړو اودس ( دعورت شاوخوا ویښتان خروول ) ، دبریتونو لنډول ، دنوکانو اخیستل، اودتخرګ دویښتانو لری کول ».

خو دسنتولو دحکم په اړه فقهاء اختلاف سره لری، امام

ابوحنیفه ، حسن بصری اوځنی نورئی سنت بولی ، امام مالک، امیام شافعی اوامام احمدئی واجب گنی او دوجوب دلیل ئي په ابوداود کي د عبثم له نیکه نه روایت شوي حدیث دي چي وائي: زه درسول (صلی الله علیه وسلم) خدمت ته ورغلم او ورته می وویل چی زه مسلمان شوم ، نو رسول (صلی الله علیه وسلم) راته وفرمایل : دکفر ویښتان درنه اخواته کړه، یعنی سردی وخریه اوځان سنت کړه. او دویم دلیل ئی دادی چی دوی وایی دناسنت سړی داوداسه اولمانځه خرابیدل زیات احتمال ځکه لری چی کیدی شی ځان په سیی توگه له بولونه پاک نه شی کړی، خو هغه پوهان چی داحکم سنت بولی وایی چی په مخکی یادشوی حدیث کی رسول (صلی الله علیه وسلم) دماشوم سنتول له نورو سنتو شیانو سره یوځای ذکر کړیدی نو ددی حکم هم سنت دی. همداراز حسن بصری وائی چی درسول (صلی الله علیه وسلم) په

مبارک لاس ډیر فارسیان، رومیان، حبشیان، توراو سپین په اسلام مشرف شویدی خوده مبارک یوهم ندی کتلی چی سنت دی اوکه نه او که سنتول واجب وی نو حتماً به یی لومړی دسنتولو حکم ورته کاوه او بیا به ئی دهغوی اسلام مانه.

## دسنتولو وخت

زیات شمیر اسلامی پوهان پدی عقیده دی چی ماشومان باید له بلوغ (ځوانی) نه مخکی سنت شی، ځکه مسلمان چی کله دشرعی مکلفیت دوری ته داخلیږی نو باید په تمامه معنی ورته تیار اوبرابروی ترڅو ټول عبادتونه په صحیح ټوګه ترسره کړی شی. خو غوره داده چی ماشوم هماغه دپیدایښت په لومړیو ورځو کی سنت شی، بیهقی له جابر (رض) نه روایت کوی وایی: رسول (صلی الله علیه وسلم) دحسن اوحسین (رض) دپیدایښت په اوومه ورځ عقیقه وکړه او په همدی ورځ یی سنت کړل.

# دسنتولو ګټی اوحکمتونه

سنتول له شرعی ګټهو سره سره ډیری نوری ګټی هم لری.
نوی طب ددی شرعی عمل څه ګټی په ګوته کړی دی خومونږ
ئی یوازی لاندنیو حکمتونوته اشاره کافی بولو:

١ - دا یوابراهیمی سنت دی.

٢ - تر ډیره حده په سرطان داخته کیدو مخه نیسی.

٣ - دشپی له خوا دسلسل البول له بیماری نه مخنیوی
کوی.

٤ - پوره پاکی او نظافت تضمینوی.

او داسی نور ....